تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات


شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الخنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب


اولہ حصہ


ناشر

مدرسہ حذیقة الاحناف

بسم الله الرحمن الرحيم

# مسئلة زيادة الايمان ونقصانه

از تشریحات

النابغه

# مسئلة زيادة الإيمان ونقصانه :

## أدلة المثبتين :

﴿قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَاناً وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ ( آل عمران آيت : ١٧٣ )

﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾ ( الانفال آيت : ٢ )

﴿وَإِذَا مَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ فَمِنْهُم مَّن يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِ إِيمَانًا فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾ ( التوبة آيت : ١٢٤ )

﴿وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا﴾ ( الاحزاب آيت : ٢٢ )

﴿هُوَ الَّذِي أَنزَلَ السَّكِينَةَ فِي قُلُوبِ الْمُؤْمِنِينَ لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَّعَ إِيمَانِهِمْ﴾ ( الفتح آيت : ٤ )

﴿وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا﴾ ( المدثر آيت : ٣١ )

بله مسئله د زيادة الايمان ونقصان الايمان زير بحث گرځوو مخکښې له دي نه چي خپلي موضوع ته راشم او بحث پرې وکړم چي مسئله د زيادت او نقصان ده .
د ايمان او اسلام په مينځ کې نسبت د نسب اربعوو نه څه شي دي او دارنګې حقيقت د ايمان او تعريف د ايمان کې چند مذاهب دي د هغې بيان څکه مسئله د زيادة الايمان ونقصان الايمان دا فرع دي په يو بل اصل باندې چي هغه جزئية العمل دي للايمان چي ايمان د عمل نه جزء دي او که نه دي کوم علماء چي قائلين د جزئية العمل دي هغوي د زيادت او نقصان هم قائل دي څکه عمل کې زيادت واقع کيږي .

او کوم علماء چي د جزئية العمل قائل نه دي هغوي ايمان ته د زيادت او نقصان هم

قائل نه دي .

نو زیادة الایمان ونقصان الایمان دا بناء شول په جزئية العمل باندې چې حقیقت د ایمان کې جزء دا عمل دي او که نه دي که بیا جزء دي جزء عرفي دي که جزء حقیقي دي په نفي د جزء سره نفي د کل لازمیږي او که نه لازمیږي دا یو اختلاف دي .

نو مسئله د زیادة الایمان ونقصان الایمان فرع شوه په جزئية العمل او غیر جزئية العمل باندې او مسئله د جزئية العمل او غیر جزئية العمل للایمان دا بله فرع ده او بناء ده په یو اصل عظیم باندې چې هغه نسبت دي بین الاسلام والایمان .

که د ایمان او د اسلام په مینځ کې د ترادف نسبت راغې د مساوات او د اتحاد نو بیا جزئية العمل في الایمان درنه خپله ثابت شو ځکه په اتفاق د ائمه وو باندې په اسلام کې عمل داخل دي چې اسلام ایمان مترادفین او متساویین شي او نسبت بینهما المساواة شي نو چې اسلام کې عمل د خیل مني نو ایمان کې خپله عمل دخیل شو .

او هر کله چې عمل في الایمان دخیل ثابت شو نو زیادت او نقصان که څوک هر څومره چغې وهي چې نه منم خپله ثابت شو چې عمل جزء شي نو عمل کې خو زیادت ښکاره دي د یو چا عمل زیات دي او د یو چا کم دي نو مونږ او تاسو په دري خبرو ته ذهن بوځو د ټولو نه به اول د ایمان اسلام مینځ کې مساوات باندې بحث کوو چې دا مساوات دي که نسبت د عموم خصوص مطلق دي که نسبت د عموم خصوص من وجه دي .

دویمه مرتبه کې به مسئله د جزئية العمل چیړو او بحث به پرې کوو .

دریم به راځو خپلې مسئلې نزاعي ته چې زیادة الایمان و نقصان الایمان دي .

## ایمان لغتاً :

په معنی د تصدیق باندې ایمان باب افعال دي د امن نه :

یقال امنه اذا صدقه چې تصدیق یې کړي او ایمان په مؤمن به باندې ګویا کې :

امنه من التكذیب والمخالفة بیا تعدیت د ایمان راځي ، کله په بآء باندې ، او کله یې

تعديت راځي په لام باندې کله چې تعديت د ايمان راشي په باء باندې نو دلته معنى د تصديق ځکه اخيستې شي :

لتضمنه معنى الاقرار . د ايمان په معنى کې شرط خارجي اقرار دي نو آمن په معنى اقر

به اقراريې پرې وکړو .

او چې کله تعديت په لام باندې راشي نو بيا يې معنى د استسلام وي انقياد وي نو آمن

له معنى استسلم وانقاد له .

ځان يې ورته تسليم کړو نفس ايمان چې راشي لغتاً په معنى د تصديق سره شو .

## او شرعاً اصطلاحاً :

تصديق النبي بجميع ما جاء به بالضرورة .

تصديق د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په ټولو هغو چې ده پرې مجيئت کړي ثابت مونږ لره دي په طريقې قطعي باندې .

هر چې اسلام دي لغتاً په معنى د استسلام او انقياد سره راځي او شرعاً اصطلاحاً د :

الانقياد لله ولرسوله بالنطق بکلمتي الشهادة .

تسليمي ده رسول الله او خداى تعالى لره په اظهار د نطق د کلمتينو د شهادة سره . سره

د ترك التمرد والاباء .

د ايمان او اسلام په مينځ کې نسبت د نسب اربعو نه څه دي د قرآن عظيم الشان او د احاديثو اصطلاحاتو ته چې مونږ لاړ شو داسې ځايونه دي چې کله کله هغلته د ايمان او اسلام مينځ کې د هغه اطلاق نه نسبت د مساوات فهميږي بعضې اطلاقات په نص د کتاب او احاديثو کې داسې دي چې د هغې نه نسبت د تباين فهميږي او بعضې اطلاقات داسې دي چې هغې نه نسبت د تداخل عموم خصوص مطلق فهميږي چې هر ايمان اسلام دي او هر ايمان اسلام نه دي هر مؤمن مسلم دي خو هر مسلم مؤمن نه دي .

دا دري واړه اطلاقات په کلام الله کې شته دي اوس مونږ نه پوهيږو چې دې کې کوم نسبت واخلو مساوات واخلو ، تباين واخلو او که عموم خصوص مطلق د تداخل واخلو .

هغه چې د ایمان اسلام په مینځ کې مساوات نسبت ترې فهمیږي هغه اطلاقات لکه د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ په حکایاتو کې راغې قوم خپل ته دا وایي :

﴿وَقَالَ مُوسَىٰ يَا قَوْمِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ﴾ ( پاره ۱۱، سورة یونس آیت : ۸٤).

جزاء چې کله د شرطینو وسط کې راشي نو په قول د کوفینو باندې دا جزاء د دواړو نه وي او په قول د بصرینو باندې ثاني شرط لپاره جزاء مقدر دوي :

إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ فعليه توكلوا .

نو دا نسبت د مساوات فهم شوې که مؤمنان یې که مسلمانان یې .

یا لکه هغه واقعه :

﴿فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ○ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ﴾

نو من كان فيها من المؤمنين هغه هم دغه بیت د مسلمینو وه چې د لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ وه اطلاق پرې د مؤمنینو هم وشو او د مسلمینو هم وشو .

بعضې اطلاقات داسې وي چې تباین ترې فهمیږي :

﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا﴾( سورة حجرات آیت : ١٤).

منافقینو وویل آمنا تاسو ورته ووایي : لم تؤمنو ، مؤمنین نه یې .

ولكن قولوا اسلمنا، داسې ووایي چې مسلمین یو دلته پته لږي چې اسلام ایمان نه غیر دي .

یا هغه حدیث د بخاري شریف سعد بن ابي وقاص فرمایي رحمت عالم غنائم تقسیمول یو شخص ما ته ډیر ګران وه هغه ته یې څه ورنه کړل التفات یې ونه کړو زه ورو ړاندې شوم عرض مې وکړو :

والله اني لأراه مؤمناً .ما ته دا مؤمن ښکاري وایي رحمت عالم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : آؤ مسلماً معنی اني لأراه مسلماً او تراه مسلماً یا او اني اراه مسلماً .

دلته د آؤ مسلماً قرأت غلط دي چې استفهام ترې جوړ کړي صحیح قرأت آؤ مسلماً دي .

ما ته مسلم ښکاري يعني هغه ته يې دا فهم ورکړو چې د يو چا باره کې قول د قطعيت د ايمان امر مبطن دي ولې کوي مؤمن مه وايه مسلم وايه اني لأراه مسلماً وايه مؤمنا مه وايه نو دې نه پته لږي چې ايمان اسلام کې فرق دي ايمان امر مبطن قلبي او اسلام امور ظاهره.

اطلاق ثالث د تداخل دي فهميږي د هغه حديث نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه تپوس کيږي:

ايها الاعمال افضل قال الاسلام.

بيا تپوس کيږي:

ايها الاسلام افضل قال الايمان.

کوم د اعمالو نه بهتر دي وايي اسلام وايي کوم اسلام بهتر دي وايي ايمان نو ايمان ته بې اسلام وويل اسلام ته يې ايمان وويل نو چې هر کله د مساوات تباين او تداخل د نسبو اطلاقات متعدد راغلل.

دې کې د شبير احمد عثماني يو تطبيق زما خوښ شوي هغه يو تطبيق ورکې کوي وايي ايمان او اسلام چې کله په نظم نسق عبارت کې معي راغلل نو په مينځ کې يا تباين دي يا عموم خصوص مطلق دي او چې کله په نظم او عبارت کې جدا راغلل بيا په کې نسبت د مساوات دي.

اطلاق بيا د ايمان په اسلام او د اسلام بيا په ايمان کيدي شي څه بُعد بيا نشته، مثال ددې د فقير او مسکين د بيع او شراء دي بيع خرڅول شراء اخيستل خو چې کله جدا جدا راشي بيا اطلاق د بيع په شراء کيږي او د شراء په بيع که يو ځای کې راغلل نو بيع خرڅول او شراء اخيستل.

او که جدا جدا راغلل ذکر به د بيع راغلي وي مراد به ترې شراء وي يا بالعکس يا لکه نقير او مسکين که يو ځای راغلل نو بيا دا جدا جدا دي که جدا راغلل نو دا بيا مساوات دي اطلاق يې په يو بل کيدې شي مسکين هغه وي چې د هغه لپاره سوال روا وي د مابنام طعام نه لري.

فقير هغه دي چې روټي لري خو مالک د نصاب نه وي د بل نه زکوة اخيستې شي خو سوال ورته روا نه وي نو مسکين او فقير کې فرق دي کله چې مصرف د زکوة کې راغلل.

للفقراء والمساكين.

یو ځای راغلل نو فقراء غیر مالکین د نصاب شو او مساکین هغه شول چې طعام او قوت نه لري د مابنام او جدا جدا که راشي :

كانت لمساكين يعملون في البحر.

دا کشتي د مساکینو وه په بحر کې کار کوه نو چې غته بیړي کشتي لري نو څنګه ورته مسکین وایي نو جواب دا چې مراد له مسکین نه دلته فقیر دي ، یا لکه :

﴿ لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللهِ ﴾.

د زکواة د مصرف بل ځای درته ښائي :

﴿ لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللهِ ﴾.

طلباء او مجاهدین دي نو ذکر د فقراء دي مساکین په کې داخل دي مساکین هم مراد دي دغه شان ایمان او اسلام دي کله چې دواړه یو ځای راغلل دا بیا تباین ایمان یو شي دي اسلام بل شي دي لکه :

﴿ إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ ﴾ ( پاره : ۲۲، سورة الاحزاب آیت : ۳۵).

که شي واحد وای نو تکریر ته څه ضرورت وه مؤمنین مؤمنات کې مسلمین مسلمات داخل وه کنه خو دا یو ځای راغلل نو مراد د مؤمنين والمؤمنات نه عقائد و والا شو صحیح عقیدې والا ، او مراد د مسلمین نه کلمه د شهادت به یې ظاهراً ویلې وي اعمال ظاهره پنځ بناء به یې پوره کړې وي.

کله چې بیا جدا جدا راشي بیا مراد د ایمان نه اسلام ، اسلام نه ایمان اخیستل کیږي لکه دې حدیثینو ته ګوري څنګه تطبیق په کې کوي :

لا يزني الزاني حين يزني وهو مؤمن .زناکار زنا نه کوي په داسې حال کې چې مؤمن وي ' نو دې حدیث نه پته لږي چې وخ‍ـ‍د زنا کې ایمان لاړه.

دویم حدیث حضرت ابوذر رضي الله عنه راوي دي کلمه چا وویله :

دخل الجنة وان زنا وان سرق .

اګر که زنا او سرقه يې کړې وي په دې خو اتفاق دی چې کافر جنت ته نه شي تللی نو سره د زنا او غلا ايمان سلب نه شو او لايزني زان وهو مؤمن کې سلب دی .

دلته حديثونو کې تدافع ده تطبيق به دا وي لايزني زانٍ وهو مؤمن کې. دا مؤمن په معنی د مسلم سره دی اطلاق د ايمان په اسلام دلته شوی دی .

لا يزني زانٍ وهو مسلم .

چې مسلم وي نو زنا نه کوي چې کوي يې عمل اسلامي يې ونه کړو خو ايمان سلب نه دی د هغه حديث نه پته لګي : وان زنا وان سرق ايمان شته په کې زنا او غلا سره جنت ته ځي ، دا تطبيق شبير احمد عثماني کړې دی .

او چا مطلقا ويلي په مينځ کې مساوات دی نو وايي چې ايمان بدون د اسلام نه مقبول نه دی او اسلام بدون د ايمان نه مقبول نه دی فرق يې وايي دا دی : ايمان چې دی بدء يې د قلب نه کيږي انتهاء په جوارحو راځي ، اسلام چې دی بدء يې د جوارحو نه کيږي او انتهاء په قلب راځي نو کامن اولاً بارز ثانياً ايمان دی بارز اولاً کامن ثانياً اسلام دی .

اسلام بارز اولاً ښکاره شي کلمه شهادة او اعمال کامن ثانياً قلب کې قوت ښکاره شي پيدا کړي ، او ايمان کامن اولاً دی نفس ايمان پټ دی خو بارز ثانياً دی وروسته ښکاره شي په اعمالو باندې .

## په تعريف د ايمان کې د علماو مذاهب :

تقريباً لسو (۱۰) ته رسي په جزئية العمل او غير جزئية العمل په ترکيب بساطت د ايمان کې چې ايمان بسيط دی او که مرکب دی ، اهل قبله يعنې دا فِرَق د مسلمينو کې چې جوړ دي لس (۱۰) جماعته دي په ايمان کې :

**اول :** قول دا عبارت دی د تصديق نه فقط :

تصديق النبي بجميع ما جاء به اقرار او عمل .

تـه دخل پـه حقيقت د ايمان کې نـه ورکوي دا مذهب أصلِيُّ بسيط بالكلية بساطت قائلين شول پـه بساطت د ايمان باندې .

دا مذهب د شيخ ابو الحسن اشعري الشافعي دي ابو منصور ماتريدي حنفي دي د امام فخر الدين الرازي دي د علامه تفتازاني او د جمهورو متكلمينو دي منهم ابو حنيفة رَحِمَهُ اللَّهُ على التحقيق ، د امام صاحب تحقيقي قول دا دی چې ايمان عبارت د تصديق محض نه دي اقرار ورته شرط خارجي دي رکن نه دي عمل يې د تقوي لپاره ځـه اسباب خارجي دي نفس ايمان بدون د عمل نه وجود لري نفس ايمان بدون د اقرار نه مقبول عند الله نه دي ځکه شرط راڅغي چې کوم اقرار خارجي دي .

دا چې نفس ايمان بدون د عمل نه وجود لري باب د ابو داؤد پرې دال دي : ﴿ باب من لا صام ولا صلى ﴾ ، بيا هغه روايت را اخلي چې يو شخص راغي دوره د جهاد وه ايمان قبول کړو په جهاد ورګډ شو او بيا شهيد شو لا صام ولا صلى نه يې روژه نيولې وه نه يې مونځ کړې وه ، عمل نشته ايمان شته او قوت د ايمان دي په صحبت د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ديرو اولياء نه يې مقام اوچت دي نو تصديق شته اقرار شته عمل نشته ايمان وجود لري .

دا چې اقرار او عمل وي تصديق نه وي ايمان نشته د هغې مثال د منافقينو شو :

﴿ قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا ﴾ .

اقرار شته دي عمل شته دي خو تصديق نشته نو ايمان نفي شو نو ددې عبارت نه دا پته ولږيده چې ايمان عبارت د تصديق نه وه کنه دا چې اقرار ختم شي لساناً خو تصديق قلبي وي ايمان مقبول دي مثال ايمان د مُكرَه دي پـه خولـه اقرار نشته کلمـه د کفر وايي خو قلب مطمئن بالايمان ، ايمان مقبول دي .

نو دا ټول دلائل ددې شو چې عمل جزء نه دي کـه واي پـه نفي سره دي ايمان نفي شوې واي دا شان اقرار رکن نه دي کـه واي پـه نفي سره دې ايمان نفي شوې واي مُكرَه کيدې ايمان نه واي ثابت چې هر کله د مُكرَه ايمان مقبول دي او د فاسق ايمان مقبول دي نو دا دلائل ددې دي چې ايمان عبارت د عمل او اقرار نه ، نه دي عبارت دي د تصديق محض نه دا د جمهورو

متكلمينو اشاعره وو ماتريديه وو منهم ابوحليفة .

### دويم مذهب :

ايمان عبارت دي د تصديق او اقرار نه معاً الا ان الاقرار امر غير لازم دي ساقطيږي عند الاكراه دا مذهب د فقهاو دي په يو روايت منهم ابوحليفة .

ايمان عبارت دي د تصديق قلبي او اقرارِ لساني نه دوي ايمان مرکب کړو د شيئينو نه تصديق اقرار ، اقراريې جز کړ خو بيا وايي چې دا اقرار امر لازم نه ګڼي نو مُکرَه نه ساقط شو د ضرورت پر بناء د امام صاحب يو قول دې کې هم شته دي چې دا قول يې هم کړي خو قول تحقيقي دادی چې دې هلته متکلمينو سره دي دې د احدی بسيط قائل دي چې بسط انفرادي بسيط د ايمان چې تصديق دي .

### دريم مذهب :

ايمان عبارت دي د تصديق بالجنان اقرار باللسان عمل بالارکان ، نه په داسې شان چې ترک العمل مخرِج دي د لره د ايمان نه مدخل دي دلره په کفر کې حتی کې فعل د مندوباتو ترک د محظوراتو ولو صغيرا هغه مخرِج د ايمان نه ګڼي مدخل يې په کفر کې ګڼي هذا هو المذهب الخوارج چې ايمان مرکب د ثلاثة اشياء نه دي : تصديق قلبي ، اقرار لساني ، عمل بالارکان .

خو په ترک د عمل سره نفي د جزء ته نفي د کل وايي ګوياکي عمل جزء حقيقي کړو په نفي د يو مندوب عمل سره او په اتيان د يو صغيرې سره سړي کافر کوي يا په اتيان د کبائرو باندې او په ترک د مفروضاتو سړي کافر کوي داد خوارجو رأيه ده په ايمان کې ، وهابيان مو دو که نه کړي .

بل فرق د محدثينو دي فرق د محدثينو خوارجو او معتزلوو ډير معمولي دي مخکې د فقهاء او متکلمينو ،متکلمينو څه ويلي هغوي وايي بسيط احدی دي فقط تصديق دي اقرار ورته شرط خارجي عمل اسباب خارجي للتقوية ، فقهاء څه وايي تصديق او اقرار اقرار امر لازم نه دي مُکرَه نه ساقطيږي خوارج څه وايي اقرار تصديق او عمل خو ترک العمل مفضي

کرځوي کفر ددې صاحب لره داد خوارجو قول.

محدثين څه وايي اقرار عمل او تصديق هغوي هم وايي دې دري څيزونو نه مرکب دي معتزله هم وايي دري څيزونو نه مرکب دي نو فرق يې په کوم ځای کې راغي خوارج وايي په ترک د مفروضو باندې په ارتکاب د ګناه کبيره باندې سړي کافر دي.

معتزله وايي په ارتکاب د ګناه کبيره او په ترک د مفروض باندې سړي خارج عن حد الايمان غير داخل في حد الکفر منزله بين منزلتين.

محدثين څه وايي عمل داخل دي خو په ترک العمل باندې کافر کيږي نه.

## څلورم مذهب:

ايمان عبارت تصديق بالجنان اقرار باللسان عمل بالارکان بحيث بترك العمل نه وځي سړي دايمان نه داخل په کفر کې نه وي دا مذهب د قاضي عبدالجبار ابن يزيد المعتزلي دي.

## پنځم مذهب:

ايمان عبارت د تصديق او اقرار او د عمل نه ليکن فعل د واجباتو ترک د کبيري هذا هو په ترک د کبائرو باندې دوي وايي چې مخرج دي د ايمان نه غير داخل دي په کفر کې ثابتوي منزله بين منزلتين دا مذهب د جمهور معتزلوو شو.

## شپږم مذهب:

ايمان عبارت دي د تصديق اقرار او د عمل نه خو ارتکاب د کبائرو مخرج ايمان لره نه کرځوي ليکن فاسق شو هذا هو مذهب جمهور المحدثين ومنهم البخاري، امام بخاري هم ددې قائل دي چې عمل جزء دي خو په ترک عمل سړي نه کافر کيږي.

## اوم مذهب:

ايمان عبارت دي د معرفت نه فقط دا مذهب د جهم بن صفوان الکوفي المرجئي دي.

## اتم مذهب:

ايمان عبارت دي له اقرار نه فقط دا مذهب د کراميه وو دي دوي په نزد به منافق هم مؤمن وي.

## نهم مذهب :

ایمان عبارت دي د اقرار باللسان نه لیکن په شرط د معرفت في الخارج سره دا مذهب درقاشي دي.

## لسم مذهب :

ایمان عبارت دي له اقرار نه بشرط تصدیق دا مذهب د قطان دي مرجئه ایمان عبارت د معرفت محض نه که اعمالو له یې څه دخل ورنه کړو.

متکلمینو هم ایمان عبارت د تصدیق نه که اعمال یې رکن نه که اوس به فرق کوي فرق شته دي.

متکلمین وایي دا اعمال اسباب خارجیه مقوي للایمان دي ترك العمل مضاعف للایمان.

مرجئه وایي څومره نیکي چې کوي مقوي للایمان نه دي څومره ګناهونه چې کوي مضاعف للایمان نه دي هغوي یعنې مرجئو عمل ته بالکل اهمیت ورنه کړو.

او متکلمینو اعمالو ته هغومره اعتبار ورکړو څومره چې محدثینو ورکړې دي، فقط دومره وایي چې داد ایمان نه جزء نه دي که جزء کوي یې په نفي د عمل به نفي د ایمان راشي مذهب د خوارجو به لازم شي یا به مذهب د معتزلوو لازم شي لکه څرنګه چې اعمال اسباب مقوي للایمان محدثین امام بخاري ګڼي همدغه شان امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ یې هم ګڼي خو هغه ورته جزء وایي دې ورته جزء نه وایي په دغه کې اختلاف دي.

اصلاً د شاه انور شاه رَحِمَهُ اللَّهُ د فیض الباري آخري عبارات که وګوري په دې دال دي هغه تاسو ته دا ښکاره کوي په زمانه د محدثینو او صحابوو کې مرجئه زیات شوي وو هغوي عمل ته سپک کتل محدثین او جمهور او صحابه اکثرین هغوي دا جزیه راوویسته چې :

الایمان قول وعمل یزید وینقص.

ایمان قول او عمل دي زیاتیږي او کمیږي دا خبره یې ولې وکړه ردیې کوه په مرجئوو باندې چې هغوي دا وویل چې ایمان قول بلا عمل، دغه بلا عمل سره داسې وو چې عمل ته یې بالکلیه مقوي اسباب د ایمان نه ګڼل.

نو هغوي ددې مرجئوو په خلاف قانون جوړ کړو چې عمل داخل کړي دا خو عمل ته
سپک ګوري نو د مرجئوو په خلاف هغوي دا پرچار وچلوه چې د يزيد وينقص قول هم د
مرجئوو په رد کې شوې دي .

د متکلمينو په زمانه کې بيا خوارج او معتزله زيات شول او مرجئه کم وو هغوي دا
عمل د ايمان داسې ارکان ګڼل چې په ترک د کبيره عمل يې سړي کافر که ، متکلمين مجبور
شول وي ويل چې ايمان قول بلا عمل دا خبره يې ددوي د رد له وجې نه وکړه وي ويل ايمان
عمل مه ګڼه په ترک د عمل سړي مه کافر کوه داد اهلسنت راي نه ده .

شاه انور شاه صاحب وايي دواړو په خپل ځای ښه پرچار کړي دي يوې ډلې په خوارجو
رد کړي بلې ډلې په مرجئوو رد کړي دي محدثينو زور عمل ته ځکه ورکړې چې هغه وخت
کې ډله داسې وه چې عمل يې نه منه بالکل او متکلمينو فقهاء زور دې خبرې ته ډير ځکه
ورکړې دي چې خوارجو عمل نه داسې شي جوړ کړو چې په ترک العمل يې سړي کافر کوه
يعني دواړو محدثينو او متکلمينو انصاف کړي څه ظلم يې نه دي کړي د خپلې زمانې سره
يې په خپلو اصولو کې د خوارجو او د مرجئوو رد کړي دي .

او داد اهل حديثو تعصب دي هغه وخت سره هم بعضې محدثينو کړي دي چې احنافو
نه يې تعبير په مرجئه سره کړي دي فرق يې نه دي کړي ولې احناف هم وايي چې ايمان قول بلا
عمل ، ابو منصور ماتريدي هم دا وايي .

ابو الحسن اشعري هم دا وايي متکلمين قول دا وايي چې : ايمان قول بلا عمل ، او
مرجئه هم وايي : قول بلا عمل نو دلته خو خبره يوه شوه سره چې تحقيق ونه کړي متکلمين او
احناف اسباب مقوي للايمان عمل ګڼي او مرجئه چې کوم دي هغوي اعمال بالکليه مقوي نه
ګڼي او بالکل مضاعف يې نه ګڼي نو لوي فرق ښکاره شو مرجئه عمل ته سپک ګوري د
مرجئوو دا مذهب دي چې ايمان ولو که څومره ګناه دې کړې وي دا ايمان والا به جهنم ته نه
ځي نو احنافو کله دا خبره کړي چې زناکار به جهنم ته نه ځي قاتل به جهنم ته نه ځي نو د
مرجئوو او د احنافو خو لوي فرق راغي مينځ کې .

هغوي اعمالو ته بالکليه دخل نه ورکوي نه يې مقوي ګڼي نه يې مضاعف ګڼي هغوي

وايي چې صاحب الايمان جهنم ته نه شي تللې داد هغوي مذهب دي د مرجئوو او احناف وايي چې ځي متكلمين وايي ځي به البته خلود به نه وي خلود به ولې نه وي چې رد راشي په خوارجو باندې خوارج وايي كبائرو والا مخلد في النار به وي .

نو اهلسنت احناف د خوارجو او مرجئوو مينځ كې چليدلي دي نو عمل ته بايد دومره سپک ونه كتل شي چې په ترك العمل سړي جهنم ته نه بوځي هغه نصوص سره به څه كوي چې : ﴿ وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ ﴾ او دغه شان د خوارجو په شان هم مه څه چې مرتكب د كبائرو مخلد في النار ګڼي نو دا اختلاف راغې په تعريف د ايمان كې .

دا چې اوس څوک وايي امام صاحب د محدثينو خلاف ولې كړي دي نو څه جرم يې كړي دي نو اوس امام صاحب باندې د امام بخاري تقليد لازم دي د امام صاحب وفات په سنه ۱۵۰ هـ كې وفات شوې او امام بخاري په سنه ۲۵۵ كې وفات شوې دي دا اوس په امام صاحب لازم وه چې امام بخاري ويلي وه چې ايمان يزيد وينقص ولې امام صاحب مخالفت وكړ .

زه وايم : امام بخاري ولې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ مخالفت كړې دي مخكني خو د وروستنو تابع نه جوړيږي وروستني به د اسلافو تابع وي نو خبره داده چې ايمان يزيد وينقص كې اول مونږ د اسلام او ايمان د مساوات خبره مونږ وچيړله ، دويم مو د هغې په تعريف كې د تركيب او بساطت خبره وچيړله اوس راځو خپلې موضوع ته چې ايمان زياتيږي او كميږي .

خوارج وايي زياتيږي او كميږي معتزله وايي زياتيږي او كميږي او محدثين وايي زياتيږي او كميږي دې دري واړو چې دا خبره وكړه نو ولې يې وكړه ځكه يې وكړه چې په تعريف د ايمان كې عمل ركن ګڼلي دي ايمان عبارت د اقرار تصديق او عمل نه ګڼي او عمل خو مونږ او تاسو ګورو چې د چا زيات دي او د چا كم دي نو چې ايمان كې عمل داخل شو په زيادت د عمل زيادت د ايمان او په كمبود د عمل كمبود د ايمان هغوي يې له دې نورو سره په تعريف د ايمان كې اختلاف لري .

او هر كله چې متكلمين فقهاء او امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ على قول تحقيقي ايمان ته د

بساطت قائل دي تصديق محض ګرځوي او بيا ته وايي چې دا زياتيږي او کميږي ، نو بيا شاه انور شاه صاحب په دغه رابطه فيض الباري شرح د بخاري جلد ۱ صفحه ۸۱ کې فرمايي ؛

**فنقول ان الزيادة والنقصان في الايمان يحتمل اربعة معانٍ .**

زيادت او نقصان په ايمان کې د څلورو معانيو احتمال لري دغه څلورمه رجعه يې کيږي دريمې ته نو دري جوړيږي :

**الاول : الزيادة والنقصان في نفس الايمان** ، حقيقت او ماهيت د ايمان کې .

**والثاني : الزيادة والنقصان في الايمان باعتبار التصديق .**

**والثالث : الزيادة والنقصان في التصديق باعتبار انبساطه وانفساحه في الصدر** ، شرح صدر کې زيادت ، **لا باعتبار الحقيقة .**

**والرابع : الزيادة والنقصان في الصورة الايمانية التي هي صورته وهو بالحقيقة راجع الى الثالث .**

دا څلورم راجع شو په حقيقت کې ثالث لره نو ټول دري شول چا چې قول د زيادت او نقصان کړي دي هغه **الايمان يزيد وينقص باعتبار انبساطه وانفساحه في انصدر** شرح صدر او اطمينان قلبي زياتيږي او کميږي .

او يا **يزيد وينقص باعتبار التصديق بالمؤمن به** ، زياتيږي او کميږي په اعتبار د مؤمن به سره زمانه د صحابه کرامو کې مؤمن به چې وه هغه زياتيده کنه ځکه يو په مؤمن به کې کتاب وه او کتاب ټول نازل نه وه وخت په وخت به آيتونه نازليدل نو د مؤمن به د زيادت سره يې ايمان کې زيادت د هغوي راتلو کله نه چې ټول دين نازل شو : **امنت بالله والملائكة والكتب واليوم الاخر** تقدير وغيره په دې کې اوس د زيادت امکان نشته مؤمن به نه زياتيږي نو ايمان هم نه زياتيږي .

خلاصه دا چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او لا د ايمان او د اسلام د ترادف قائل نه دي دا جدا جدا څيزونه ګڼي هر کله چې جدا شول نو اسلام زياتيږي او کميږي خو ايمان زياتيږي او کميږي نه

عمل په اسلام کې داخل کئي خو عمل په ايمان کې داخل نه کئي دا چې دې دواړو کې فرق دي شواهد څه دي :

اول دليل دې لپاره هغه حديث طويل د جبريل دي صحيح مسلم جلد ١ صفحه ٢٨ کې ذکر کړي دي جبرائيل امين عَلَيْهِ السَّلَام راغې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته :

وقال يا محمد أخبرني عن الإسلام فقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الإسلام أن تشهد أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله وتقيم الصلاة وتؤتي الزكاة وتصوم رمضان وتحج البيت إن استطعت إليه سبيلاً قال صدقت قال فعجبنا له يسأله ويصدقه قال فأخبرني عن الايمان قال أن تؤمن بالله وملائكته وكتبه ورسله واليوم الآخر وتؤمن بالقدر خيره وشره.

دا مضمون د امنت بالله دي استدلال د احنافو په دې شکل دي که د ايمان اسلام مينځ کې ترادف مساوات واي چې تپوس د اسلام کړې واي ولې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام د اخبرني عن الايمان، بله پوښتنه کوي شي يو دي بيا پوښتنه کوي.

که بيا جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام ته پته د ترادف نه واي تپوس به يې کړې واي نبي عَلَيْهِ السَّلَام په نورو الفاظو تعبير ولې ورته کوي ورته به يې ويلې واي چې د اسلام تپوس دې وکړو ايمان او اسلام شي واحد دي خو دا هغه وخت کې چې اسلام عبارت د پنځ بناء نه وګرځيږي د اسلام لپاره قران کريم کې يوه بله اصطلاح ده چې هغه اصطلاح قديمي ده من زمن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې مراد له اسلام نه فطرت اسلامي دي نو هغه اصطلاح د اسلام چې ده د هغې اطلاق په عقيده سالمه باندې کيږي هغه بيا د ايمان سره مترادفه ده.

﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ (پاره ٣ سورة آل عمران آيت : ١٩).

﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ﴾ (پاره ٣ سورة آل عمران آيت : ٨٥).

اسلام چې دي دا په معنی د جزي عملونو باندې نه دي مراد دلته له اسلام نه نوم ګرځيدلي دي د يو خاص شريعت او عقيدې لپاره او د دين لپاره نو دا حديث دال دي په فرق بين الاسلام والايمان باندې ايمان عبارت د امورو مبطنو نه شو، اسلام عبارت د امورو

ظاهروو نه شو اعمال وګوري په اسلام کې داخل شو په ایمان کې نه دي .

دارنګې روایت د مسلم جلد ۱ صفحه ۹۱ هغه حدیث مخکې د بخاري په حواله چې ذکر شو چې حضرت سعد رضي الله عنه وویل چې یو شخص ما ته ګران وه :

فقلت یا رسول الله مالك عن فلان فوالله إني لأراه مؤمنا فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلما أي أو إني لأراه مسلما .

یعنې داسې وایه چې د مسلم ګمان پرې کومه مؤمن مه وایه هغه امر مبطن دي په قطعي طریقې څوک نه شي ویلې د مسلم اطلاق پرې کوه .

دارنګې د سورة حجرات ۱۴ نمبر آیت :

﴿قَالَتِ الأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا﴾ .

ګورئ منافقینو ته داسې وایي چې اسلمنا وایي خو آمنا مه وایي ځکه ایمان عبارت له تصدیق قلبي نه دي ستاسو نشته اسلام عبارت له اقرار لساني نه ستاسو شته اسلمنا وایي مسلمین یاستي خو مؤمنین نه یې دا ادله شو د فرق په مینځ د اسلام او ایمان کې چې فرق شته .اوس که مونږ ته څوک بل ځای پیش کوي چې اطلاق د ایمان په اسلام او د اسلام په ایمان شوې وي نو مونږ به هغه د شبیر احمد صاحب قول پیش کوو چې هغه یو ځای نه دي راغلې جدا جدا راغلې کله چې جدا جدا راشي نو هر ځای کې دې چې ایمان کې عمل ذکر کړو نو هلته به مراد له ایمان اسلام وي الایمان بضع وسبعون شعبةً ځانګې دي بیا یې ورسره اعمال ذکر کړي دا قوي دلیل دي د جزئیت د عمل لپاره .

نو جواب به دا وي چې دلته ایمان مستقل راغلې انفرادي کله چې ایمان جدا شي د اسلام نه اطلاق د ایمان په اسلام د اسلام په ایمان کیدې شي نو دلته ذکر د ایمان دي مراد ترې اسلام دي : الاسلام بضع وسبعون شعبة ، داد اسلام شعبې دي د ایمان نه دي د ایمان شعبې چې دي مؤمن به دې شپږ شیان دي دوي نه هم چې تپوس وکړي چې د ایمان څو شعبې دي ویلې شي چې بضع وسبعون نو که دلته ایمان په خپله معنی واخلي خو بیا دې ورته مؤمن به ۷۵ کړه کنه نه شي ویلې چې دا اجزاء د ایمان دي بلکې دا اجزاء د اسلام دي او هرچې ایمان دي د هغې لپاره اجزاء هغه شپږ څیزونه دي دا فرق ثابت شو په مینځ د دواړو کې .

هر چې دویمه خبره ده چې دا جزء دي او که نه د هغې لپاره د احنافو تایید د متکلمینو تائید کې ما مخکې وویل چې تصدیق نه خو ځکه عبارت دي چې یو یې لغوي معنی سره مطابقت دي دویم وجود د تصدیق بدون د عمل نه او ایمان به وي مونږ به قول د ابي داؤد روایت کې پیدا کړو چې : لا صام ولا صلى ، دارنګې ایمان د جمله فُساقو دي عمل نشته دي او ایمان شته دي .

دارنګې اقرار رکن نه دي مونږ پیدا کړو ایمان په صورت د مُکرَه کې چې اقرار نه لري اقرار نشته او ایمان شته دي خو دا څوک هم نه شي پیدا کولې چې تصدیق دې نه وي ایمان دې وي ورکړي چیلنج ورته چې څوک دي هغه سړي چې تصدیق نه لري او اطلاق د ایمان پرې شوې وي که څوک وایي منافق نو مؤمن نه دي مسلم دي منافق ته مؤمن نه ویل کیږي اطلاق د اسلام پرې کیږي د ایمان پرې نه کیږي ځکه تصدیق قلبي نشته نو دا ددې دلائل شو چې عمل جزء نه دي اقرار جزء نه دي اقرار شرط خارجي قبول نه دي عند الله تصدیقات بدون د اقرار نه په صورت د ضرورت د اکراه کې ساقط شو اقرار .

او هر چې عمل دي داد دي شرائطو نه هم نه دي البته اسباب خارجیه مقوي للایمان دي په دې ټکره کې فرق وشو زمونږ له مرجئیو نه چې مرجئه یې مقوي للایمان نه ګڼي اعمالو ته اعتبار نه ورکوي او مونږ یې مقوي للایمان ګڼو دا فرق شو .

## حکایت :

د اهل حدیثو څه علماء دلته راغلي وه د رستمي د مدرسې مدرسین هم په کې وه ماسره په توسل کې د رستمي ځوي ابوسعید چا مناظر تاکلي وه څه وخت مخکې یې په توسل مونږ سره مناظره وه بیا هغه خلکو وویل یو په کې باجوړي وه چې ددوي امام وه چې مونږ به تا ته د رستمي ځوي ابوسعید راولو ما ورته وویل چې هر څوک راولي رایې ولې نو دغه علماء د رستمي د مدرسې سره ملګري شوې وه چې بله ورځ مناظره ده دا مولوي صاحب وګورو چې دده د علم اندازه څنګه ده زما سیل ته راغلي وه .

څه طالبان وه څه په کې علماء وه هغه باجوړي ملا یې هم راوستلې وه فضل مولی نومیده بیا د هغه مناظرې په ورځ حاضر نه شول د تیښتې لاره یې غوره کړه تر دري کالو بیا هغه جومات بې له امام تش پروت وه ددوي دا فائده د هغه مناظرې نه ولاړه شوې وه چا په

کې مونځ نه کوه ما وویل دا یې څه فائده شوه هغه ملا د شپې تښتیدلی و د باجوړي دزي کاله بیا هغه جومات د پیر سباق پیر صاحب یو مرید وه هغه دا مسئله د نزاع جوړه کړې وه نو هغه خلکو ته به د جنازي مونځونه بیا د پیر سباق صاحب دې مرید ورکول او مسجد همداسې بې له امام نه وه خالي وه لانجه وه په کې.

چا به ویل حنفي راولو چا به ویل وهابي راولو نو دغه فضل مولی یې هم ځان سره راوستلې وه چا چې مناظره ټاکلي وه ما ته یې وویل چې تا ده ته چیلنج ورکړي دي ما وویل زه خو دا نه پیژنمه ده په هغه علاقه کې زمونږ یو حنفي ته چیلنج ورکړي مونږ قبول کړي دي اوس ستاسو څه مقصد دي څه ته راغلي یاستې واي مونږ هسې یو معلومات لپاره راغلي یو چې مونږ د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ سره رحمة الله علیه وایو مونږ هغه ته د بزرګي عقیده لرو خو تپوس دا کوو چې د هغه خبره د قرآن او حدیث نه خلافه راشي نو تاسو به قرآن او حدیث پسې ځي او که د هغه خبرې پسې به ځي. ما ورته وویل چې تا مخکې وویل چې مونږ هغه ته رحمة الله علیه وایو او بزرګ ورته وایو زمونږ علاقه کې بزرګ هغه سړي وي چې نه د قرآن مخالف وي او نه د سنت چې د قران او سنت مخالف وي مونږ هغې ته ګمراه وایو بزرګ ورته نه وایو وایي نه مطلب هغه حدیث به ورته رسیدلې نه وي کنه ما ورته وویل چې تا وویل چې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ قول د قرآن او د سنت خلاف راشي څه سنت ورته ونه رسیدل قرآن خو ورته رسیدلي وه کنه نو داد قرآن مخالفت یې ولې وکړو او چې وي کړو څوک چې د قرآن مخالف وي هغه خو ګمراه وي بزرګ نه وي دا بزرګ دې ولې ورته ووېل.

غصه شو وایي زه به درته وښایم چې د قرآن مخالفت یې کړي وي ما ورته وویل چې ته به وښایي د هغې به جوابونه واوري یخ کرخ به شي خو دا خبره به واخلي چې ته وایي چې زه امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ ته بزرګ وایم دا دې دروغ وویل منافقت کوي ما ته چاپلوسي کوي دا ته دروغ وایي چې زه هغه ته رحمة الله علیه وایم هغه ستا په نزد مخالف د قرآن یو ګمراه انسان تیر شوي العیاذ بالله ستا دا عقیده ده ما ته بیا چاپلوسي مه کوه چې زه بزرګ ورته وایم بزرګ هغه نه وي چې د قرآن مخالف وي وایي زه یې ښایم درته ما ورته وویل وښایه بس دارک لاړ: الایمان یزید وینقص ته، ما ته معلومه وه چې دې به همدغه ځای ته ځي نو دري ملایان وه یو په کې زما غوندې ښه چاغ وه او هغه دوه داسې کمزوري غوندې وه نو دا

کمزوري غيږده کوي يې ورته ويلي څه نوم يې وه هغوي ماته ويلي چې دي هلته مسلم الثبوت درس کوي .ما وويل چې ذا څه لالا دي دا په مسلم الثبوت څه پوهيږي نو هغه نه ما تپوس وکړو چې داسې وکړه يا به مخکې څو الايمان يزيد وينقص دا خو حکم دي په ايمان باندې حکم خو په مجهول نه کيږي يو ځل به ايمان پيژنو چې ايمان څه ته وايي د ايمان شرعي تعريف راته وکړه شرعي تعريف څه ده ؟

وايي اقرار باللسان تصديق بالجنان داسې شروع شو ما ورته وويل چې دا تا کوم تعريف وکړو دا خو نه په قرآن کې شته او نه په سنت کې شته دا دې د څه تعريف وکړو تا نه ما شرعي تعريف غوښتې شرعي شارع شارع غواړي شارع خو خداى تعالى او نبي عليه السلام دي صاحب د ابو المنتهى خو شارع نه دي کنه تا خو ما ته د هغه تعريف شروع کړو نو دا وچ کلک چې وه دا خو غلي شو هغه چاغ شروع شو وايي زه تعريف کوم ما ويل وکړه وايي : ان تؤمن بالله وملائکته وکتبه هغه حديث طويل د جبرائيل :اخبرني عن الايمان دا تعريف يې ذکر کړو ما ورته وويل چې دا تا شرعي تعريف ذکر کړو دا صحيح تعريف شرعي دي چې ايمان عبارت دي څيزونو نه دي خو ما وويل چې زه دا تپوس کوم چې يو سړي دي په دې نورو ټولو ايمان لري خو ايمان بالله نه لري نيم مؤمن دي که پوره مؤمن دي که کافر دي .

وايي سو چه کافر دي ما وويل امنت بالله کې نور ايمان لري خو وملائکته په ملائکو يې نه لري وايي دا هم کافر دي ما وويل په نورو يې ايمان نشته دي خو په رسل يې نه لري وايي دا هم کافر دي ټول مې ورته تکرار کړه ما ورته وويل چې په دې شپږ واړو يې ايمان دي وايي مؤمن دي ما ورته وويل چې ته وايي چې زياتيږي نو چې دې کې يو شي کې ايمان نه وه کفر وه چې ايمان راغې ايمان راغې ته وايي زياتيږي ته يې اوس زيات کړه څنګه يې زياتوي ؟

سړي نه لار ورکه شوه وايي نه زه به مثال پيش کړم ما ورته وويل پيش کړه وايي د ايمان مثال د ونې دي د ونې خاښونه يا شاخونه زياتيږي خلک وايي دا ونه زياته شوه نو ونه خو هماغه ده دي خاخ يې زيات شوي ما ورته وويل چې ستا دا عقيده ده چې د ايمان خاښونو کې زيادت راځي وايي هو ما ورته وويل چې دا خو د مسلمان عقيده نه ده وايي داد امام بخاري عقيده ده ما ورته وويل دروغ مه وايه امام بخاري دا نه وايي د ايمان خاښونه دا شپږ

څيزونه دي امنت بالله وملائكته وكتبه الخ داد ايمان خانبونه دي ته وايي خانې يې زياتيږي نو امنت بالله ستا عقيده دا چې خدايان به زياتيږي دجال به خداى شي ته به پرې ايمان راوړي امنت بالله و ملائكته ملائک به زياتيږي ورسوله رُسل به زياتيږي و كتبه كتب به زياتيږي ته چې مثال د ونې وركوي چې د ونې خانبونه زياتيږي نو مؤمن به به زياتوي. كنه دغه مثال دې نو ما وويل داد امام بخاري عقيده ده چې خدايان زياتيږي يا رسل زياتيږي.

بيا ما ورته وويل چې ګوره د ايمان مثال د ونې سره مه وركوه د ايمان مثال د راڼا سره وركړه يو راڼا دي بطور مثال ۴۰ انچه دي يا يو ميټر دي يا يو ګز دي چې هر څومره دي خلک وايي راڼا زياتيږي او كميږي دا اطلاق من حيث الانجلاء رڼا يې زياتيږي او كميږي په اعتبار د انجلاء سره دې ته نسبت وشو خپله راڼا نه زيات شوي نه كم شوي د ايمان مثال د دغې راڼا دي مؤمن به نه عبارت دي نه زياتيږي نه كميږي البته چې څوک وايي زياتيږي او كميږي باعتبار الانجلاء د ايمان رڼا زياتيږي كله چې ايمان قوي شي رڼا يې زياته شي چې ايمان ضعيف شي دي ګوري څكه مونږ په نور د ايمان ليدل نه كوو كشف نه لرو.

اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الله، د ايمان رڼا مو په سترګو نه ده كتلي په هغې كې انجلاء او مغيبات مو نه دي كتلي نو دا ضعف د ايمان دي.

د اولياء ايمان قوي دي د هغوي په زړونو كې رڼا پيدا شي او دا رڼا دومره زياته شي چې په هغې كې بيا كشوف ګوري مغيبات ګوري نو زيادت ايمان او نقصان ايمان په حقيقي اطلاق كې نه زياتيږي نه كميږي كه وايي چې زياتيږئ او كميږي مجازي نسبت دي من حيث الانجلاء رڼا يې زياتيږي او كميږي .نو بيا يې وويل نه دا خبره ته پريږده مونږ ددې معلوماتو لپاره راغلو چې په هغه ورځ به دلائل څه شي وي بيا ما ورته وويل چې تاسو دا خبره وكړه چې امام صاحب د قرآن او سنت مخالفت كړي دي وايي دا قرآن كريم كې چې آيتونه راغلي د مسئلې په ابتداء كې چې كوم آيتونه ليكل شوې وه هغه يې وويل فزادتهم ايماناً داد زيادت نسبتونه چې څو ځايه شوې دي دا يې پيش كړه وايي دا قرآن كريم كې چې د زيادت نسبات كړي.
نو ما وويل چې د زيادت نسبت يې كړي خو مجازاً قرآن كريم كې ولې مجاز نشته ډيرو ځايونو كې مجازي نسبتونه شوي دي نو دا خو د ابن قيم مقلدين دي يوه په كې آواز وكړو

چې قرآن کريم کې مجاز نشته دي ما ورته وويل مجاز نشته دي وايي نه : إني اراني اعصر خمراً ، هغه يو ورته خوب تيروي خوب ګورم چې شراب نچوړوم نو شراب نچوړوي که انګور نچوړوي وايي انګور ما ويل دا څنګه وايي چې اعصر خمراً وايي هغه بيا يه اعتبار د ما يؤل اليه سره بيا شراب ګرځيږي ، ما ورته وويل چې دا اعتبار د ما يؤل اليه مجاز دي کنه فما ربحت تجارتهم ، تجارت يې ګټه ونه کړه نو تجارت ګټه کوي که تاجر ګټه خو تاجر کوي نسبت يې تجارت ته کوم معنى شوه ، تجري من تحتها الانهار ، لاندې ترې ولې روانې دي ولې نه دي روانې او به په ولو کې روانې دي وله کله روانيږي .

نو دا ټول مجاز نه دي نو قرآن کريم خو د مجازي اصطلاح نه ډک دي مشحون او مملوء دي ما وويل دا نسبت د زيادت شته خو مجازاً دي زادتهم ايماناً من حيث الاطلاع رښا د ايمان يې زياته شي خپله ايمان خو عبارت دي له مؤمن به نه زياتيږي نه او نه کميږي وايي نه دلته زيادت راغلي مونږ دې پسې ځو ما وويل ځي پسې خو دا مه وايي چې امام صاحب د قرآن او سنت خلاف وکړو دا تعصب دي او داد امام صاحب سره انتهائي زيات تعصب روان دي که امام صاحب د مرجئو قول کړې واي عمل ته يې اعتبار نه وي ورکړې مقوي للايمان نه ګڼلي بيا به مو دا اعتراضونه کول هغه خو الحمد لله د متکلمينو اهلسنت نه دي عمل ته پوره اعتبار ورکوي پوره مقوي يې ګڼي خو صرف وايي ايمان کې دخيل مه ګڼي .

که تعصب ونه شي دا خو ډيره ښائسته خبره ده نو که انصاف وشي او عمل دې داخل کړو په ايمان کې د هر عمل په نفي سره به قول د نفي د ايمان کوي بيا مثلاً مونځ چا نه پاتې شو کافر حج پرې فرض وه لاړ نه کافر زکوة يې ورنه کړو کافر ګناه کبيره يې وکړه کافر وغيره نو داد خوارجو مذهب دي که د اهلسنت وهابيان دلته خلکو ته دوکه ورکوي په خوله کې د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ قول پيش کوي چې هغه د زيادت قائل دي نو د زيادت خو خوارج هم قائل دي معتزله هم قائل دي محدثين هم قائل دي خو محدثين وايي چې په ترك العمل کفر نه لازميږي او خوارج وايي کفر لازميږئ او معتزله وايي منزله بين المنزلتين ثابتيږي .

نو دې ځای کې بايد ستاسو فکر وي چې د وهابيانو په دې دسيسه ونه غوليږي چې د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ قول نه استدلال وکړي او خپل مذهب پرې ثابت کړي داد خوارجو نه دي

دوي تارك الصلوة ته کافر وايي دوي ساحر ته کافر وايي دوي قاتل ته کافر وايي دوي هر يو مخالف د مسلک خپل ته مشرک وايي اباحت د دماء د هغوي کوي او اباحت د اخذ د اموالو د هغوي کوي نن صبا ښکاره مونږ ګورو چې کوم ځای د دوي تسلط راشي په نوم د جهاد باندې هغلته بيا اهلسنت او د هغوي کورونه ورانول د هغوي مال لوټ کول جائز او جهاد ګڼي.

يوه خبره بدر الدين عيني کړي ده او زما خوښه ده اګر که شاه انور شاه صاحب اشارتاً څه ردود پرې هم کړي دي هغه دا نزاع لفظي جوړه کړې ده هغه وايي الايمان ايمانين، ايمانونه دوه دي يو ايمان منجي من دخول النار دي بل ايمان منجي من خلود النار دي يو هغه ايمان دي چې د نفس جهنم نه سړي بچ کوي بالکليه بيا جهنم ته پرې نه شي تللې منجي من النار دي. بل ايمان نجات ورکوي د خلود النار نه هميشه لپاره دي جهنم نه بچ کوي خو د څه وخت لپاره دې په کې پريږدي. دا يو ايمان ته ايمان مطلق وايي دې بل ايمان ته ايمان کامل ويلې شي ايمان کامله منجي من النار دي، ايمان مطلق نفس ايمان منجي من خلود النار دي.

وايي امام صاحب چې وايي الايمان لا يزيد ولا ينقص دا ايمان مطلقه يادوي چې منجي من خلود النار دي په فاسق کې شته کنه په جهنم کې به وي خو هميشه به نه وي دې کې وايي عمل جزء نه دي او هر چې ايمان هغه دي چې منجي من النار دي چې د هغې ايمان په وجه بالکليه جهنم ته نه شي تللې دا ايمان کامل دي نو وايي دا کمال ايمان ته نه راځي بدون العمل داد عمل په وجه راځي نو دغه ايمان چې تا د نار نه خلاصوي مطلقاً دغه ايمان چې کامل دي عمل په کې داخل دي هغه ايمان چې تا د خلود نه بچ کوي په هغې کې عمل داخل نه دي ښه منصفانه قول يې کړي دي نو د امام صاحب د لا يزيد ولا ينقص د ايمان مطلق سره ولړوه د محدثينو د يزيد وينقص د ايمان کامل سره ولړوه، ايمان کامل يزيد وينقص عمل په کې دي او ايمان مطلقاً چې کوم دي عمل په کې داخل نه دي.

په دغه جزيه کې زما دغه څو خبرې يادې وې په دغه الفاظو مې ستاسې ذهنونو خلاصولې شول نور پرې زه هم نه پوهيږمه خداى جَلَّ جَلَالُهُ دې وکړي چې ذهنونه مو پرې خلاص شوې وي او په خپل امام معترض نه شي امامنا چې څه استدلالت لري قوي دي په

خپل ځای ولې دا خبره وکړه چې بلا عمل قول یې وکړو مقصد یې ردوو په خوارجو باندې او په معتزلوو باندې چې دا ډیر شوې وه او دوې عمل داسې جزء وګرځوه چې په ترک العمل یې سړي کافر کوه لکه نن صبا مونږ دا مسئله ولې زیر بحث کړه ځکه وهابیان دې ته دومره زور ورکوي چې امامنا مخالف د قرآن پرې ثابتوي څوک چې قائل د لایزید ولا ینقص وه مؤمن یې نه ګڼي او د مرجئوو نه یې ګڼي او حقیقت داسې نه دی .

مونږ مرجئه نه یو مونږ اهلسنت یو او د مرجئوو مخالف یو مرجئه نفس ایمان ناجي ګرځوي د دخول النار نه او مونږ ایمان کامل ناجي ګرځوو د دخول النار نه دا څومره لوي فرق شو هغوي وايي چې نفس ایمان چا کې وي جهنم ته نه شي کتلې او مونږ وايو چې نفس ایمان چا کې وي د ګناه کبیرې مرتکب وي جهنم ته به ځي خو خلود به نه وي په جهنم کې فرق د خوارجو سره دا شو چې دوي وايي ګناه کبیره یې وکړه خلود به په جهنم کې وي .

مونږ وايو خلود به نه وي بیا به جنت ته ځي یا په مرور د وقت سره یا په شفاعت د عبادو سره شهداء سره انبیاء او صلحاء سره په شفاعاتو باندې به بیا ترې راوځي .

باقي د فیض الباري صاحب چې دي د نفس ایمان دې هم قائل نه دي د زیادت خو ایمان په اعتبار د تصدیق انجلاء چې واخلي بیا زیاتیږي او کمیږي ایمان په اعتبار د مؤمن به سره چې بیا واخلي بیا نه زیاتیږي او نه کمیږي زیاتیده او کمیده خو په زمانه د صحابوو کې چې قرآن کریم نوي نازلیده کله چې قرآن کریم تمام ته ورسیده د امنت بالله مؤمن به واخله هغې کې نه زیاتیږي او نه کمیږي او نفس ایمان په اعتبار د انشراح صدر زیاتیږي د انجلاء سره زیاتیږي د تصدیق قلبي سره زیاتیږي په دغه اصطلاحاتو کې زیاتیږي خپله ماهیت د انسان چې تصدیق محض واخیستلې شي او عبارت د مؤمن به ستنه وګرځولې شي لایزید ولا ینقص .

## دا مسئله د زیادة الایمان ونقصانه خلاصه شوه

ددې نه مخکې چې کومه مسئله وه هغه مسئله د سیماء وه هغې کې مونږ پوره وضاحت وکړو چې دا په تندو د بریلویانو دعوت اسلامي کې پیدا شوې ده او دا ډیر خطرناک تنظیم دې او بیکاره خلک دې د خارجیانو چمچې دي او بریلویان پرې سترګې پټوي نو مونږ د بریلویانو سترګې په خپل تحقیق سره خلاصې کړې چې سترګې مه پټوي ولې سترګې پټوي

چې دا توره تاپه د دیوبندي تبلیغي جماعت کې وه نو ګمراه دي ګڼله او چې ستاسو په دعوت اسلامي کې دري داني پیدا شوي نو اوس دي جنتي محراب ترې جوړ کړو دا ستاسو الصالي دي نو دې ته دې بریلوي حضرات متوجه شي.

او دغه شانته دیوبندي جماعت کې چې کوم تبلیغي جماعت کې تاپې پیدا شوې دي او دا جنتي محراب ګڼي نو هغوي تبلیغي جماعت خو ناپوهه دي جاهلان دي نو علماء سترګي به یې خلاصي کړو چې داد خوارجو نښې دي دا جنتي محرابونه، نه دي او داد انبیاء علیهم السلام او د صحابه اولیاء په تاریخ کې د هیچا په تندي کې نه وه پیدا شوې بغیر د یو څو غلطو خلکو نه چې ذوالخویصرة وه او څه نور د خوارجو رؤساء وه او دغه شانته یو ډیر بدترین انسان وه چې دې هغه چا نبي علیه السلام ته ډیر تعریف وکړو چې ښه مونځ ګوي نو دي راغلي وه مدینې منورې ته بیا نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ناست وه او هغه شخص راغې داسې دارک تیر شو سلام یې وانه چوه مسجد ته لاړ نبي علیه السلام صدیق اکبر رضی الله عنه ته توره ورکړه وایي ورشه دا سړي په مسجد کې قتل کړه هغه چې ورغې هغه داسې په عاجزي ولاړ وه او ډیر ښائسته مونځ یې کوه زړه یې پرې ونه شو.

چې راغي یارسول الله صلی الله علیه وسلم تا ماته توره دې لپاره راکړي چې څوک مونځ نه کوي نو چې زه پرې جهاد وکړم هغه په مونځ ولاړ دي څنګه یې مړ کړمه، عمر فاروق رضی الله عنه ته یې توره ورکړه وایي ورشه ته یې مړ کړه هغه چې ورغي چې عاجزي یې ورته ولیده نو بیرته راغې وایي زما هم پرې زړه ونه شو. بیا حضرت علي رضی الله عنه وویل چې ما ته توره راکړي زه یې وژنم وایي دا واخله خو چې ته ورځي نه به وي حضرت علي رضی الله عنه چې ورغې هغه شخص نه وه وتلي وه په بل طرف بیا چې داسې راغې تیر شو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم راوغوښت وایي ته چې تیریدې زړه کې دې څه راغله وایي زړه کې مې راغله چې زما نه بهترین انسان بل نشته صحابه دلته بیا راګرم شول چې اوس یې مړ کړي چې ته د نبي علیه السلام نه هم بهتر یې رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک وویل اوس خاموش شي مه یې وژني.

هغه روایت کې راځي چې: بین عینیه سفعة من الشیطان، دده په تندي کې د شیطان اثر وه چې مائل تور والي ته وه.

د سفعه په معنی پسې زه ډیر وګرځیدمه تلاش مې وکړو زړه کې مې د تورو الي معنی کوله خو پیدا کړې مې نه وه بیا مې پیدا کړه د سفعه معنی اهل لغت په تورو الي سره کوي نو دده په تندي کې تور والي وه چې دا اثر پیدا وه من الشیطن له شیطان نه مونځ یې کولو تندي کې ټاپه وه نبي عليه السلام د قتل فیصله کوله چې مړیې کړي .

نو دا ټاپه د اهلسنت په تندو کې نشته او نن صبا چې چا کې مو دا ټاپه ولیده یا به د مفرطینو نه وي په بریلویانو کې به هغه بریلوي وي چې د شیعه ګانو چمچه به وي ، او یا به د تفریطیانو نه وي چې د خوارجو چمچه به وي تبلیغي جماعت هم وهابیانو ته کار کوي همدوي سره لاړ شي بلله ورځ ترې نه وهابي جوړوي اګر که په خوله به وایي چې مونږ وهابیان نه یو خو ځو مره خلک چې وهابیان شول دا ددوي په دې تبلیغ باندې دوي سره تلې وي بیا وروسته آزاد خیالي شي او منتهاء یې بیا وهابیت او پسې مخکې لاړ شي .

او هغه روایت علی وجهه سفعة من الشیطن سنن دار قطني جلد ۴ صفحه ۴۶۷ کې د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه په روایت سره ذکر شوې دي .

الله پاک دې مونږ او تاسې علم نافع او انشراح صدر نصیب کړي ګوري طالبانو زه چې کومه حواله د نظر نه خپله و نه باسمه زه یې وایم نه ولو که د زمانې د معتمد شخص د خولې نه مې اوریدلې وي حدیث ترې نه جوړوم صبا درته وایمه چې ما د یو شیخ د خولې نه داسې اوریدلي دي خو چې ما خپله لیدلې وي زه به هغه وایمه او که څوک وایي چې دا دومره کتابونه دې څنګه وکتل نو عقل دلته کار نه کوي بس دا دعاګانې کوي چې :

﴿رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي يَفْقَهُوا قَوْلِي﴾.

شرحه د صدر چې راغله بیا دا خبرې مشکلې نه وي په څو چنده ددې نه زیاتې حوالې په کې بیا دننه پرتې وي .

## دا مسئله ختمه شوه

